| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | ملی پاڅون |
| لیکونکے | : | شبر علي باچا |
| د چاپ کال | : | جولايي ۲۰۱۰ |
| شمیر | : | ۱۰۰۰ |
| بیه | : | ۲۰۰/- روپۍ |
| د چاپ منتظم | : | یاسر علي باچا |
| د چاپ ځائے | : | جدون پرنټنګ پریس پېښور |
| خورونکی | : | پاڅون پرنټرز اینډ پبلشرز مردان |

د پښتونخوا د خوارې کښ
اولس په نوم چې د دې
وطن د ازادۍ او خپلواکۍ
د پاره یو ملي پاڅون ته
لیواله دے

# د شبیر علي باچا انور د منظوم کلام یو جاج

پروفیسر ډاکټر محمد زبیر حسرت د مرحوم شبیر علي باچا انور د کلام څو پاڼې راکړې، وئیل ئې مطالعه ئې وکړه او ډېر خه پرې ولیکه او دا ئې هم راته ووې چې ښنګه دلته ناست ئې هم دلته پرې په ناسته ناسته ولیکه. ما وئیل دا خو مطالعه غواړي. یو داسې ماحول غواړي چې چرته خاموشي وي او مداخلت نۀ وي او تر ټولو لویه خبره دا ده چې یو موډ (چُرت) غواړي او بیا دا چې د شبیر علي انور باچا مقام ته ځان رسول غواړي یا د هغوي په مقام ځان پوهول غواړي. سره د دې چې د مرحوم باچا جي سره زما لیدۀ کاتۀ نۀ وو شوي خو ولې زۀ د هغوي له افکارو نه د هغوي د لیکونو په ذریعه خبر یم او د هغوي د درانۀ شخصیت په باره کښې چې مې له نورو څۀ اورېدلي دي یا مې څۀ لوستلي دي نو د هغې نه مې هم اندازه لګولې ده چې مرحوم په هر لحاظ یو قامي اتل، دانشور او د سماج د بدلون دپاره عملي ګامونه پورته کونکے وۀ. هغه د قامي نجات پېغام رسونکے، د ملي یووالي ارماني

وهٔ. د محکومو قومونو مرستيال وهٔ او د هغهٔ د ژوند په مقاصدو کښې نهٔ خو خپل نوم ګټل وو، نهٔ خو هغه د شهرت اوږے وهٔ او نهٔ ئې چرته د دولت ګټلو او د کُرسۍ حاصلولو مدعا څرګنده کړې وه. یا ئې د دغو څيزونو د خصول دپاره هڅې کړې وي. د هغهٔ د ژوند مقصد د ضعيفو، مظلومو او د زپلو انسانانو خدمت کول وو. په هغوي کښې بېدارے پېدا کول وو او هغوي له خپلو حقونو نه خبرول او هغوي منظم کول وو او چې ما کله د هغهٔ د مقالو او نظمونو مطالعه کړې ده نو زهٔ په دې حقيقت رسېدلے يم چې د مرحوم تر ټولو لوئے ارمان، آرزو او خواهش دا وهٔ چې يو ازاد او خپلواک پښتون دولت دې تاسيس کړے شي خو چې په دغه دولت کښې استحصال نهٔ وي او طبقاتي لاندے باندے نهٔ وي. هغهٔ په خپلو مقالو کښې په ډېرو موضوعاتو ښهٔ په ايمانداری بغېر له څهٔ پس و پېش نه او بغېر له اګر مګر نه ليکل کړي دي. هغهٔ کهٔ د قوم او قوميت په موضوع څهٔ ليکلي دي يا د مذهب باره کښې يا بيا په خاصه توګه د ادب باره کښې. کهٔ سياسي موضوعاتو باندې ئې قلم چلولے دے او کهٔ په فلسفه ئې څهٔ ليک کړے دے نو د هغهٔ ليک به خپل مقصد بيانولو کښې واضح او هيڅ قسمه ابهام او کړکيچ به پکښې نهٔ وهٔ. نو د داسې شخصيت باره کښې راته ليکل دومره ګران په دې هم شول چې زما او د مرحوم ترمنځه:

چه نسبت خاک را به عالم پاک

او چې ځان ته مې فکر شو نو ما وې چې:

من آنم که من دانم

خو باوجود د دې هم د محترم پروفیسر صاحب حکم شاته غورځول هم راته مناسب ښکاره نۀ شول او د مرحوم باچا جي په دغه لړ کلام مې سوچ او فکر وکړو او د کلام په مناسبت سره غواړم چې زما ذهن ترې څۀ اخذ کړل چې خپل نور ملګري او لوستونکي هم په خپله مطالعه کښې شریک کړم او دغه شان د مرحوم باچا جي په وساطت سره خپل نوم محفوظ کړم. د مرحوم باچا جي د دومره لږ کلام په سبب پوه نۀ شوم چې آیا مرحوم خپل نور کلام ضائع کړے دے یا ضائع شوے دے او یا کۀ موجود دے نو چرته دے؟ دغه سوالونه بهرحال ځکه پېدا کېدے شي چې د مرحوم د موجوده کلام نه دا واضحه ښکاري چې دا د مرحوم ابتدائي کلام نۀ دے او نه د ځوانۍ د ولولو او جذبو نه ډک کلام دے. بلکې زما په خیال دا کلام د باچا جي د هغه دور سره تعلق لري چې کله هغوي د خپل ژوند یو مقصد ټاکلے وۀ او په یو ځائے مستقل ولاړ وۀ. خو د دغه کلام پوخوالے، مقصدیت او خوند رنګ او شعري خوبۍ د صنعتونو استعمال او د الفاظو جوړښت دا ټول د دې ګواهي ورکوي چې مرحوم باچا جي د دې نه اګاهو مشق سخن کړے دے او دا ئې چرې هم نۀ خو ټول کلام دے

او نۀ داسې کېدے شي. ځکه چې په وړومبي نظر مې د هغوي په دغو کاغذونو کښې وړومبے کلام ولوستو نو په دغه کلام کښې د شعري خوبيو، سجع او شعري صنعتونو او د الفاظو زېروبم راته زما پورتنی دعوې واضحه کړې. په دغه غزل يا نظم کښې چې مطلع ئې ده:

لوېي څو جرګې په پېښور کوو
بيا به سم ګوزار په ستمګر کوو

د دغه غزل فني اړخونه او مقصديت دومره اثر انګېز دے چې د يو قادر الکلام شاعر نه علاوه د هر چا د وس خبره نۀ ده او دا لوړه شعري رتبه د هر چا په نصيب شوې نۀ ده. په دغه نظم يا غزل کښې چې د کومو صنعتونو استعمال شوے دے په مختصره توګه ورته اشاره کول ضروري دي لکه:

**تجنيس مضارع** : په کلام کښې دوه داسې لفظونه راوړل چې د هغې د حرفونو شمېره خو برابر يا يو هومره وي ولې يو حرف پکښې مختلف وي لکه عطا، خطا يا رحمت او زحمت چې په دغو کښې يو يو حرف مختلف دے. د باچا جي دغه شعر ئې مثال دے:

تک به د توپک وي په اټک باندې
دغه شر محشر له يو اشر کوو

په دې شعر کښې محشر او اشر کښې يو حرف مختلف دے

**تجنيس لاحق:** په کلام کښې دا سې دوه لفظونه راوړل چې د حرفونو تعداد ئې يو هومره وي او يو حرف پکښې مختلف وي او دغه حرف په تلفظ کښې هم د بل نه مختلف وي لکه د باچا جي دا شعر:

تېر چې شي دا تور شبخون په خور پښتون
بيا باچا اختر به په باختر کوو

په دې شعر کښې په تور او خور کښې يو حرف مختلف دے خو د حرفونو شمېر ئې برابر دے او په تلفظ کښې ئې فرق دے يعني په يو کښې (ت) او بل کښې (خ) ده.

**تجنيس زائد:** په کلام کښې دوه داسې لفظونه راوړل چې حرکات او سکنات ئې يو شان وي او په قسم کښې هم يو له بله جدا نهٔ وي خو په يو کښې له بل نه حروف زيات وي. دا د حروفو زياتوالے د تکي په منځ کښې هم کېدے شي په سر کښې هم او په اخر کښې هم راتلے شي لکه:

تک به د توپک وي په اتک باندې
دغه شر محشر له يو اشر کوو

په دې شعر کښې ((شر)) او ((محشر)) متجانسين دے. په يو کښې د بل نه دوه حرفونه زيات دي.
او دا شعر ئې د تجنيس مطرف مثال دے:

دلته اباسین هلته پښین نیسي
یو ښکر شئ لښکر په قبضه کړ کوو

په دې شعر کښې ښکر او لښکر متجانسېن دي. په لښکر کښې یو (ل) سېوا دے. تجنیس مطرف هغه قسم دے چې پکښې د متجانسېنو په اخر کښې د یو حرف کمے زیاتے وي لکه د باچا جي مرحوم دغه پورتنے شعر.

**صنعت شبه اشتقاق** : دا هغه صنعت دے چې کله یو شاعر په کلام کښې څو داسې لفظونه راوړي چې هغه د یو مصدر نه وتلي ښکاري خو ولې په حقیقت کښې داسې نهٔ وي. دغه شان صنعت په صنعت شبه اشتقاق بللے شي لکه د باچا جي مرحوم د لاندیني شعر په دواړو مصرعو کښې دا صنعت موجود دے:

تک به د تورپک وي په اټک باندي
دغه شر محشر له یو اشر کوو

په پورتني شعر کښې تک، تورپک او اټک په ظاهره خو داسې ښکاري لکه چې له یو مصدر نه وتلي وي حالانکې داسې نهٔ ده. دغه رنګې شر، محشر او اشر هم دي. په دغه نظم یا غزل کښې داسې مثالونه نور هم ډېر دي.

**صنعت سجع** : په شعر کښې یا په یوه فقره کښې داسې الفاظ راوړل چې د هغې اخري حرفونه یو شان وي لکه باران،

جانان، مهمان وغېره. د دې ټولو لفظونو اخري حرف يو دے دې ته سجع وئيلے شي. دا به پخوانو خلقو زيات پکاروّل اوس هم د نثر ښائست ګڼلے شي. خو په نظم کښې هم د ښکلا او حسن باعث وي. د مرحوم باچا جي په کلام کښې ئې مثالونه موجود دي لکه:

تک به د ټوپک وي په اټک باندې
دغه شر محشر له يو اشر کوو

يا دا شعر

دلته اباسين هلته به پشين نيسي
يو ښکر شئ لښکر په قبضه کړ کوو

د وړومبني شعر په وړومبي مصرع کښې تک، ټوپک او اټک. په دوېمه مصرع کښې شر، محشر او اشر. د دوېم شعر په وړومبي مصرع کښې اباسين او پشين خپلو کښې سجع لري. او په دوېمه مصرع کښې ښکر، لښکر، قبضه کړ داسې الفاظ دي چې پکښې د سجع مثال موجود دے او د دغه نظم يا غزل څنې نور شعرونه هم د دې مثال دے.

**صنعت تضاد يا طباق:** په کلام يا شعر کښې داسې لفظونه راوړل چې د يو بل ضد وي لکه خندا او ژړا، غم او ښادي. ورځ او شپه داسې صنعت ته د تضاد يا طباق صنعت وئيلے

شي د مرحوم باچا جي په شعرونو کښې ئې ګڼ مثالونه شته لکه:

نـهٔ دي سرپرسـت چـې قـام پرسـت نـهٔ وي
دا دراز خبـــره مختـــــصر کـــــوو

په دې شعر کښې دراز او مختصر خپلو کښې متضاد دي.

د رڼـا پـه شيـشه سـپينه، دې بـاران د تـورو کـاڼو
د اسمان نه تر زمينه، د اوچتې شپې غورځنګ د ے

په دې شعر کښې سپين او تور د يو بل متـضاد دي. دغه شان اسمان او زمکه هم د يو بل متضاد دي.

خاموشـي شـونډې ګنـډلي، دي لېوالـه د يـو چغـې
غلـے والـے ورتـه وائـي يـو نغمـه د شـور و شـر ده

په دې شعر کښې خاموشي او چغه، غلے والے او شور و شر د يو بل متضاد دي.

**صنعت مراعاة النظير** : په شعر کښې داسې شعرونه راوړل چې تضاد پکښې نهٔ وي صرف د يو بـل سره مناسبت لرونکي او د يوې سلسلې وي داسې صنعت ته صنعت مراعـاة النظير وئيلے شي. د مرحوم باچاجي دغه شعر ئې غوره مثال د ے:

ګـل بـه شـي، غنچـه بـه شـي، چمـن بـه شـي
دا بـې سـره دشـتې واک کامـل غـوارې

په دغه شعر کښې ګل، غنچه او چمن د یوې سلسلې الفاظ دي او په خپلو کښې متضاد هم نهٔ دي.

ستا د ګل رنګ بدن د پشم باران راغے دلته
زما د ملک ترې ورشو باندې بس سم وربږي

**صنعت تدبیج** : په شعر کښې چې د مختلفو رنګونو ذکر وکړے شي نو دې ته صنعت تدبیج وئیلے شي. د مرحوم باچاجي دا لاندینے شعر ئې مثال دے:

څهٔ ښکلے تجویز دے وړاندې کړے یار
شنهٔ بنګړي ماتېږي سرهٔ پائل غواړي

په دې شعر کښې شنهٔ او سرهٔ د رنګونو ذکر دے نو دا صنعت تدبیج دے.

**صنعت مخاطبه** : اکثر شاعران په کلام کښې ځان ته مخاطبه کوي او دا مخاطبه یوائې په مقطع کښې نهٔ کوي بلکې په مطلع کښې هم کېدے شي. د باچا جي مرحوم دا شعر ئې مثال دے:

د زړهٔ وینې څښه انوره
د شرابو چې ګراني ده

**قلب مستوي** : په کلام کښې داسې ټکي راوړل چې د دواړو ډډو نه يو شان لوستے شي لکه درد ، کاواک، نادان، دې ته قلب مستوي وائي. په شعر کښې ئې مثال داسې دے:

د انــور شــعر نــه نــشې څــاڅي نــن
جــوړ د وصــال هغــه مــے دۀ څــبنلي دي

په پورتني شعر کښې ((نن)) داسې لفظ دے چې د دواړو ډډو نه وليکلے شي نو بيا هم هغه لفظ جوړيږي. دا د قلب مستوي مثال دے.

**صنعت حسن تعليل**: په کلام يا شعر کښې د څۀ صفت دپاره داسې سبب يا وجه پېدا کول چې په حقيقت کښې ئې هغه وجه يا سبب نۀ وي ولې په کلام کښې د باريکۍ او خوند پېدا کولو دپاره داسې شوے وي. لکه د باچاجي مرحوم دا شعر:

د شفق په سوزکي رنګ کښې د آفتاب د قتل رنګ دے
د افق سينه زخمي ده ماښام وينو کښې رنګ بنګ دے

په دې شعر کښې د ماښام د شفق ذکر دے چې د هغې اصلي وجه بله ده خو شاعر د آفتاب قتل او د افق د زخمي سينې نه د وينو د راوتلو او ماحول سُور کولو ذکر کړے دے.

**صنعت تلميح** : په کلام يا شعر کښې زړې تاريخي واقعې ته اکثر شاعران اشارې کوي داسې صنعت ته صنعت تلميح وئيلے شي لکه د باچاجي مرحوم دا شعرونه:

مونږه د خليل رسم په ځان منو
خلق ګډ حلال کړي قرباني کوي

په دې شعر کښې د حضرت ابراهيم عليه السلام د قربانۍ تاريخي واقعې ته اشاره ده او يا لکه چې په دې شعر کښې د امام حسين او د يزيد دواړو په لور اشاره ده او د کربلا تاريخي واقعې ته پکښې اشاره شوې ده:

قاتلان دي يزيديان دي
بيا حسين دے کربلا ده

**تشبيه**: د تشبيه معنې په لغت کښې د مشابهت، په شان، په څېر، په مثل ده. يعني يو څيز د څهٔ خاص صفت په وجه د بل په شان ګرځول چې د اورېدونکي يا لوستونکي په زړهٔ کښې د هغه څيز تصوير وګرځي. باچاجي مرحوم چې کله د خپل خوږ او ګران وطن قيصه کول غواړي نو هغهٔ تهٔ په خپل وطن کښې هغه ټولې ناکردې، بې انصافۍ، بې اعتدالۍ او ظلمونه، بې عدالتۍ او طبقاتي لري برې په دروغو او چل ول په اقتدار قبضه کول، د خلقو په حقوقو ډاکې اچول د وطن وسائل او ذرائع لاندې کول. غرض دا چې په دې وطن کښې په ماضي

کښې څۀ شوي دي نو هغه ټول ورته ياد شي. هغه ئې مخې ته ودرېږي او د وطن د قيصې چې کوم خوارۀ وي د هغې سره چې د بنده زړۀ ځنګه د خوشحالۍ نه ټوپ وهي، نو باچاجي نۀ خو دغه خوارۀ محسوسوي او نۀ د هغۀ زړۀ د وطن دننه څۀ خوشحالي او ښادي ليدلې ده. چې هغه د وطن د نوم اورېدو سره خوشحالي او ښادي محسوس کړي. نو هغه د خپل زړۀ د وطن د قيصې او اورېدو د حالت نقشه په داسې تشبيهاتي انداز کښې وړاندې کوي ليکي:

لکه د ژمي په ماښام چې توري لړې راشي
لا يو مزدور د کارخانې نه تر جونګړې راشي
لا يو دهقان د خان پټي نه کور ته ستړې راشي
لا يو سوالګرے د مالداره وروځې خړې راشي
لا بېګناه قېدي زندان ته لکه مړے راشي
لا يو مظلوم د ظالمانو نه درګړے راشي
زما زړګيه بس د خوږ وطن قيصه داسې ده
د اورېدو نه ده قسم دے چې ترخه داسې ده

د دغه نظم دوېم بند او څلورم بند هم دغه تشبيهاتي انداز لري.

د دغو مختصرو صنعتونو او فني لوازماتو نه غرض دا ثابتول او جوتول وو چې د مرحوم باچاجي دغه شاعري کۀ

هر څو زمونږ تر لاسونو ډېره لږه رارسېدلې ده خو د ښې شاعرۍ صفات او لوازمات پکښې موجود دي او دا د دې خبرې ثبوت هم دے چې دا موجوده کلام د باچاجي مرحوم نمائنده کلام دے او په هيڅ جوړ د هغوي ابتدائي کلام نۀ دے او شايد چې دا د هغه وخت کلام وي چې کله د هغوي د شعر ډېک ښۀ پوخ شوے وۀ.

باقي د مرحوم باچاجي د کلام موضوعات او غرض او مدعا څۀ ده؟ څرګنده خبره ده چې باچاجي مرحوم د فن د ژوند دپاره د نظريې علمبردار وۀ او د فن برائے فن د نظريې ناقد وۀ. يو ترقي پسند او قوم پرست شاعر وۀ او د يو ترقي پسند او قوم پرست شاعر نه چې څۀ توقع کېدے شي مرحوم باچا جي په دغه توقع پوره دے او د يو مترقي شاعر او قوم پرست نه چې په کومو موضوعاتو د وېنا توقع کېدے شي نو د مرحوم باچاجي په کلام کښې دغه موضوعات، خيالات او احساسات ښۀ په واضحه توګه موجود دي. خو د فن وجود ته ئې نقصان نۀ دے رسولے. چې د هغوي د قادر الکلامۍ او فني پوهې يو غټ دليل دے. د مرحوم باچاجي شاعري اګر چې په مقدار کمه خو په معيار سمه ده او پکار دي چې د پښتو معاصر ادب د دغې شاعرۍ د خوند او رنګ نه محرومه پاتې نۀ شي. د ډاکټر پروفېسر محمد زبير حسرت مننه کوو چې هغوي د مختلفو ذريعو نه دغه کلام راغونډ

کړو. ترتیب ئې کړو او د ادب د مئینانو په وړاندې ئې سوغات کړو.

الله پاک دې وکړي چې د مرحوم نثر او نظم زمونږه د اولس په ښه راشي او الله پاک دې مرحوم په خپل رحمت ونمانځي او د هغهٔ کلام دې د پښتونخوا د اولس په ښېګړه راولي. آمین.

فرهاد محمد غالب ترین
صدر
مرکزي پښتو ادبي جرګه
نوښار پښتونخوا

# شېر علي باچا انور
# او د هغهٔ شاعري

تېر چې شي دا تور شبخون په خور پښتون
بيـــا باچـــا اختـــر بـــه پـــه بـــاختر کـــوو

نن د محترم ملي اتل شېر علي باچا انور يادول په څو وجوهاتو ډېر ضروري دي. يو خو په دې چې خپل مشاهير او مشران هېرول د ژوندیو قامونو شېوه نهٔ ده او بل په دې وجه چې په پښتون اولس د دوي په درونـد پښتون وطـن ((پښتونخوا)) او د دوي په خوږه مورنۍ ژبه پښتو له هره لوري د خزان سپېرهٔ بادونه راالوتي دي. پښتون تس نس او تالاترغه پروت دے او تېرے پرې لادا چې له هره اړخه قتلېږي، وژلے شي، نوغے ئې ورکولے شي او ملامته کولے هم شي. نن په ټوله نړۍ کښې پښتون له دهشت ګرد نامه ورکړې شوې ده او د پښتون د جنت جنت وطن پښتونخوا حالت خو دا دے چې د فوځي يرغلونو په زد کښې دے. لر او بر دواړه لوريه په پښتانهٔ تورې نورې جوړې دي، جبر پرې کېږي، تعليم نشته، کالج نشته. مدرسې او د زدکړې ادارې نشته، عدالت نشته،

د رائې ازادي نشته او هغه خبره چې د چا زور دے د هغۀ شور او د هغۀ کور دے. د دنیا لوئي طاقتونه په دې یوه خبره متفق دي چې په هر رنګ وي، پښتون بدنام کړي او پښتون په تور او زور ووژني او پښتون بې غمه، بې درده، بې فریاده، بې اوازه قتلېږي او هم بدنامېږي او د پښتو ژبې حالت دا دے چې د نصاب له کتابونو په یوه او بله بهانه بهر کولے شي. کله ورته عربي رامخکښې کړے شي، کله د ډرائنګ په مقابله کښې کېښودے شي او کله د کمپیوټر د زدکړې له لارې د پښتو قتل عام روان دے. وړاندې چې به د ټېلي وژن نه د پښتو په هفته کښې دوه درې ورځې کوم د یوې یا نیمې ګېنټې پروګرامونه ټېلي کاسټ کېدل، هغه هم په عامو پښتنو بند کړي شوي دي. دا رنګ په رېډیو هم پښتو پروګرامونه په نشت حساب دي او چې کله چې بنده د دې دور مناسبت سره خیال کوي چې دا دور د الیکټرانک مېډیا او پرنټ مېډیا دور دے نو د پښتو پکښې څۀ برخه نشته او کۀ څۀ لږه شان شته هم، نو د هغې د ختمولو دپاره د یوې منصوبې لاندې سازش روان دے. نو په داسې حالاتو کښې مونږ ته شېر علي باچا انور مرحوم ځکه رایادېږي چې دغو خلقو د پښتون اولس، د پښتون وطن. د پښتو ژبې، د دې خاورې او اولس د ابادۍ، ازادۍ او سوکالۍ دپاره یوه اوږده مبارزه کړې ده او هم د دغه مبارزې نتیجه وه چې پښتو ژبه په طور د لازمي

مضمون د صوبې په سکولونو کښې منلې شوې وه او د ټولې صوبې په سکولونو کښې لازمي وه او هم د دغو مشرانو د جدوجهد برکت وۀ چې پېرنګيان لاړل او دلته ازادي راغلله او واک اختيار د وطن د اولس شو. خو پېرنګي انتظام بلکې ظلم دا وکړو چې يو خوا ئې خپله ژبه په مونږه مسلط کړه او بل خوا ئې راباندې اردو راوتپله او داسې خلق ئې په يوه بهانه او په بله بهانه په دې وطن مسلط کړل چې د دې وطن ژبې تالا ترغه کړي او د يوې مشترکه ژبې د مسلط کولو او د نورو ژبو د محکوم کولو دپاره ئې هر يو غير اخلاقي، غير انساني، غير اسلامي او غير جمهوري کار روا وګڼلو او انجام ئې دا شو چې د پاکستان اکثريت ئې دې ته اړ کړو چې د دوي نه خپله لاره جدا کړي. دوي دا خو ومنله چې دغه خاوره او دغه خلق دې جدا شي خو چې د دوي دغه مقدسه ژبه بحال پاتې شي. دغه ژبې ته دوي د هر څۀ نه زيات تقدس ورکړو. تر دې چې د دې په سر ئې د حريت پسندو بنګاليانو سرونه چڅنې کړل، د هغوي وينې ئې تويې کړې خو د هغوي ژبه ئې ونۀ منله او دا نن چې هر کال د بين الاقوام (اقوام متحده) د قرارداد له رويه د يويشتمې فرورۍ ورځ د ژبو د عالمي ورځې په مناسبت نمانځلې شي، دا هم د هاغه غيرتي بنګاليانو د خپلې مورنۍ ژبې سره د ډېرې مينې او وينې وينې قربانۍ نتيجه ده. د دغو خودغرضو او نادانانو خدا

پرستو په خیال صرف د دوي اردو ژبه دا صلاحیت او اهلیت لري چې دا دې قامي ژبه وي. خو دغو نادانانو چرې دا فکر ونه کړو چې اردو د کوم قام ژبه ده؟ اول خو ورته قام پیدا کړئ کنه قامي ژبې خو هاغه وي چې قام لري لکه پښتو، سندهي. بلوچي. سرائیکي، براهوي، چترالي، پنجابي او داسې نورې ژبې. نو په داسې حالاتو کښې مونږ ته هاغه ټول مشران را یاد شي چې د پښتون قام، پښتونخوا او پښتو ژبې دپاره ئې جدوجهد کړے دے او د قامي حقونو د حصول په غرض ئې هلې ځلې کړې دي او په دغو محترمو خلقو او هستیو کښې د شېر علي باچا انور مرحوم نوم هم روښانه او ځلانه دے.

هرکله چې په کال ۱۹۳۳ کښې په نوښار کښې د ځینو پښتو مئینانو محترمو مشرانو په هلو ځلو د پښتونخوا اولنۍ باقاعده پښتو ادبي جرګه جوړه کړې شوه نو هغه وخت د دې وطن د پوهانو خیال دې خوا راغلو چې پښتون اولس په علمي، تعلیمي، ثقافتي او ادبي لحاظ ډېرو وروستو پاتې دے دا قام هم لکه د نورو قامونو دا حق لري چې پرمختګ وکړي او پښتو ژبه هم دا حق لري چې دا دې تعلیمي، دفتري او علمي ژبه شي او په دې ژبه کښې دې ټول عصري علوم منتقل کړے شي. هم د دغه جذبې او احساس ترمخه د پښتو ادبي جرګې نوښار د دغه غرض دپاره په مختلفو موضوعاتو

کتابونه وليکل. احلامسونه کېدل. مشاعرې کېدې او خلق ئې دې ته کمارل. لمسول او راهڅول چې خپلې مورنۍ ژبې پښتو ته توجه وکړي او هم د دغه جرګې برکت وۀ چې د رحمان بابا او خوشحال خان خټک مزارونه دريافت او بنائسته کړے شو او کليزې دستورۍ او مشاعرې شروع شوې او خبره تر دې حده لاړه چې د افغانستان حکومت د دغو دواړو مشاهيرو د مزارونو دپاره تعويذونه راوليږل. د نوښار پښتو ادبي جرګه لا تانده او فعاله وه چې په کال ۱۹۵۰ کښې د پېښور په ((بزم رحمان)) کښې د محترمو امير حمزه خان شينواري، کاکاجي صنوبر حسين مومند او دوست محمد خان کامل مومند په مرسته او هلو ځلو د ((اولسي ادبي جرګې)) بنيادې تيږه کېښودې شوه، چې د خپلو نورو ډېرو زلميو شاعرانو، اديبانو او منورينو په مرسته ئې پښتو ژبې، ادب، ثقافت، صحافت او پښتون سياست ته ډېره وده او کتمه وركړه. تحقيقي، تنقيدي، علمي او ادبي مقالې او مضامين وليکلې شو، کتابونه چاپ کړے شو، افسانې لار وموندہ. تکل رواج شو، خاکې راښکلې شوې، په انقلابي نظمونو او رومانوي او مقصدي غزلونو او مجموعي طور سره ټوله پښتو شاعرۍ کښې د کلاسيکي او روماني شاعرۍ د امتزاج نه جديده شاعري منځ ته راغله. اولسي ادبي جرګه کښې د خپل عصر مشهور شاعران، اديبان او منورين کۀ د هرې نظريې او

عقيدې سره تړلي وو. خو د پښتنو د ودې او پرمختګ دپاره يوه خُلهٔ وو او په دې هيڅ قسمه سودا بازۍ او سمجوتې ته نهٔ وو تيار.

هم د دغه جرګې روښانه فکرونه وو چې په ټوله پښتونخوا کښې ئې ادبي تنظيمونو، ټولنو، جرګو او مرکو ته لاره هواره کړه او دا شان په مردان کښې د ادبي فعاليتونو جاري ساتلو دپاره د مردان مشرانو شاعرانو اديبانو په کوششونو د ((پښتو ادبي جرګه مردان)) په نامه يوه جرګه جوړه کړه چې ميا خېر الحق ګوهر کاکاخېل، لالا غلام سرور، قمر راهي، اصغر لالا او شېر علي باچا انور ئې روح روان وو. پير ګوهر، اسرار د طورو، ډاکټر محمد اسرار، ډاکټر محمد همايون هما، عبدالرؤف زاهد، محمد اقبال اقبال او عبدالواحد قلندر اومه خُلهٔ هلکان وو. د جرګې اجلاسونه به هره هفته باقاعدګۍ سره د شېر علي باچا انور د وکالت په دفتر (بالاخانه، ګولډن سنيما سره نزدې) کښې کېدل. دلته د مردان د ډېرو نامتو شاعرانو، اديبانو روزنه او خصمانه شوې ده او زړونو او ذهنونو ته ئې د خپلو رڼو او زرينو فکرونو نه رڼا، خلا او ښکلا ورکړې ده. د شاعر په قول:

ډېر تفاوت دے په انسان انسان کښې فکر وکړه
واړه لګيا دي، خو څوک ځان او څوک جهان جوړوي

دغو خلقو ځان هېر کړو او د جهان جوړولو نیت ئې وتړلو دغه د مردان د ادبي فعالیتونو او د نورې صوبې د مختلفو ځایونو د مختلفو تنظیمونو سره د راشه درشه او رابطو زرینه دوره وه ځکه چې ادب، ثقافت، صحافت او سیاست په عروج وو

## د شېر علي باچا انور د ژوند حالات

د ۲۷ جولائي ورځ د پښتون ملي رهبر، مایه ناز او ممتاز ملي دانشور او د شلمې صدۍ د عظیم انقلابي رهنما، د کسان تحریک باني او د پښتونخوا ملي عوامي پارټۍ د سېکرټري جنرل مرحوم شېر علي باچا انور د کلیزې ورځ ده او دا ورځ د ټولې دنیا د محنت کشو دپاره عموماً او د پښتون قام دپاره خصوصاً د شلمې صدۍ د انقلابي رهبر شخصیت د ویاړ وړ کارنامو، انساني خدماتو، قامي خدماتو ته د انتهائي عقیدت او احترام ورځ ده.

مرحوم شېر علي باچا انور د پښتونخوا په نامتو خاوره د مردانو ښار هوتي مردان کښې په کال ۱۹۳۵ کښې د پخواني خدائي خدمتګار تحریک د یو مشهور او اهم سیاسي خاندان د سېد اکبر شاه باچا په کور کښې وزېږېدو. د دوي پرورش او تعلیم و تربیت په انتهائي مهذب او علمي ماحول کښې وشو په کال ۱۹۵۰ کښې ئې د ګورنمنټ هائي سکول نمبر ۱ مردان نه لسم پاس کړو او څه موده ئې په ضلعي

دفتر کښې ملازمت وکړو. خو دې حساس ذهن ته د سرکار نوکري راس نۀ وه ځکه ئې پرېښوده او تعليمي سلسله ئې جاري وساتله. د مردان کالج نه ئې ثوارلسم پاس کړو او په ۱۹٦۲ کښې ئې د کراچۍ نه د ايل ايل بي (وکالت) ډګري واخسته او په مردان کښې ئې وکالت شروع کړو. خو د خپل سياسي چاپېرچل او علمي ادبي سرګرميو له کبله ئې وکالت هم پرېښودۀ.

مرحوم شېر علي باچا انور د طالب علمۍ د زمانې نه د قومي سياسي تحريک يو فعال او نۀ ستړے کېدونکے غړے وۀ او په ډېره کم عمرۍ کښې د نېپ (نېشنل عوامي پارټۍ) سياسي مشر وۀ چې د خپلو سياسي فعاليتونو له کبله په اولس او خواري کښه طبقه کښې مشهور وۀ. چونکې مردان د سياسي او علمي ادبي سرګرميو مرکز وۀ، دلته ورته د ډېرو نظرياتي ملګريو مرسته او ملګرتيا په لاس ورغله چې وړاندې ئې تذکره وشوه.

مرحوم شېر علي باچا انور د سياسي فعاليتونو سره سره خپلې ادبي سرګرمۍ هم جاري وساتلې. دلته ئې په پښتو ادبي جرګه مردان کښې او په کراچۍ کښې د ((عدل)) رسالې په ذريعه په ادب او صحافت کښې لوئے نوم پيدا کړو او د نېشنل عوامي پارټۍ د زلمي سياسي رهنما په حېث ئې شپه ورځ نۀ ستړے کېدونکې سياسي مبارزه جاري وساتله او د

خپلو غيرتمندو پښتنو وګړيو ئې د پارټۍ په يو مرکز راغونډېدو او منظم کولو کښې تاريخي کردار ادا کړو. شېر علي باچا انور د نېشنل عوامي پارټۍ د منشور مطابق پښتونخوا کښې په محنت کشو خصوصاً کسانانو د فيوډل دور د ناورا ظلمونو خلاف په ۱۹۶۳ کښې کسان کمېټي او کسان مزاحمتي تحريک راجوړ کړو. دا د پښتون قوم د تحريک لويه الميه ده چې د نېشنل عوامي پارټۍ د منشور نه د انحراف په وجه په قومي او طبقاتي سوال (نکته) د انتشار ښکار شوه او داسې پارټي په درېو برخو تقسيم شوه. (۱) نېشنل عوامي پارټي (ولي خان ګروپ)(۲) پښتونخوا نېشنل عوامي پارټي او (۳) مزدور کسان پارټي (دې ډله کښې شېر علي باچا سره افضل بنګش، ستار لالا او زيارت ګل لالا هم شامل وو) شېر علي باچا انور د مزدور کسان پارټۍ په پليټ فارم غريبانان او کسانان متحد او منظم کړل او د تاريخي کسان تحريک په قربانيو ئې په لکونو غريب اولس له په دې وطن کښې د ملکيت حق او په ټولنه (معاشره) کښې د برابرۍ حېثيت ورکړو او د عزت د ژوند مالکان ئې کړل او دا رنګ ئې د فيوډالي نظام د ناروا ظلمونو نه د نجات تاريخي کارنامه تر سره کړه. دې سره په صنوبر مجله (چې د کاکاجي صنوبر حسېن ياد تازه کوي) کښې ئې د يو رهنما کردار ادا کړو. چې پکښې فيض احمد فيض، کرشن چندر،

سعادت حسن منټو. حمزه شينواري. احمد نديم قاسمي.
سبط حسن، ميجر اسحاق، ارباب محمد خان کاکا او د باچا
جي غونډې اوچتو اديبانو د خپلو تحريرونو په ذريعه د انسان
دوستۍ، غير طبقاتي ټولنې، ازادۍ او سياسي فهم و فراست
غونډې مضامين او د هغې مفاهيم په اولس کښې عام کړل.
باچا جي د ايوب خان د آمريت په مارشل لائي دور کښې د
روپوشۍ په صورت کښې خپله سياسي مبارزه جاري ساتلې
وه او د يحيٰي خان د مارشل لا زياته دوره ئې د ډيره اسماعيل
خان جيل په عقوبت خانو کښې تيره کړې وه. په کال ۱۹۷۷ (د
ذوالفقار علي بوټو اخري دوره وه او د جابر آمر ضياء الحق د
مارشل لا اولنۍ دوره) د خاصو اندروني سياسي حالاتو او
بهرنيو سياسي تبديليو تر مخه باچا جي قومي تحريکونو ته
د خپلې خاورې خپله پارټي عالمانه مشوره ورکړه او خپله
پارټي ئې د پښتونخوا مزدور کسان پارټۍ په نامه اعلان کړه
او هم د دې فلسفې ترمخه ئې قومي تحريکونو له تجويزونه
ورکول او د خپل موقف وکالت ئې کولو. داسې ئې پښتونخوا
مزدور کسان پارټي د استعماري فيوډالي نظام او د ضياء
الحق فوځي آمريت برخلاف د هر قسمه قربانۍ دپاره
راميدان ته کړه. دغه زمانه (کال ۱۹۸۱) کښې د مارشل لا
حکومت په باچا جي ناروا مقدمې راجوړې کړې او د ځينو
ملګريو مسلم شاه ايډوکيټ، محب ګل کاکاجي، شيرين

باچا ، حبيب الرحمان کاکا او اختر ګل لاله سره ئې ونيولو او تر اتو مياشتو ئې د بالاحصار پېښور په عقوبت خانو او اذيت خانو کښې د خپلو ناوړيو ظلمونو ښکار کړل. چې وروستو ئې په کال ۱۹۸۵ کښې د هرې پور جېل کښې بنديوان وساتل باچا جي د محمد خان جونيجو په دور کښې خپله پارټي يو ځل بيا منظم کړه او په کال ۱۹۸٦ کښې ئې د پښتونخوا نېشنل عوامي پارټۍ مشر (محمود خان اچکزي سره) او پښتونخوا مزدور کسان پارټي شريک پښتونخوا ملي عوامي اتحاد قائم کړو او د چتراله تر بولانه تاريخي دورې ئې وکړې او داسې ئې خپل زيلے اولس د قومي نجات پارټۍ د اهميت نه خبر کړل. هم دا شان ئې د خپله خاوره خپله پارټي تر مخه په کال ۱۹۸۹ کښې[1] د دواړو پارټيو په انضمام په وړومبي ځل د کوئټې (جنوبي پښتونخوا) او پېښور (شمالي پښتونخوا) د درست پښتون يوه شريکه پارټي د پښتونخوا ملي عوامي پارټۍ په نامه راجوړه کړه چې مشر محمود خان اچکزے ئې چئيرمېن او باچا جي ئې تر مرګه پورې سېکرټري جنرل وۀ.

---

[1] شېر علي باچا په ۱۷ اکتوبر ۱۹۸۸ خپل يو مضمون ((پښتون پارټۍ او د هغې مرام نامه څنګه؟)) کښې ليکلي دي چې (پښتونخوا ملي عوامي پارټي د دوو دوست او مبارز تنظيمونو اتحاد کول په نتيجه کښې مېنځ ته راغله يعني د پښتونخوا مزدور کسان پارټۍ او پښتونخوا نېشنل عوامي پارټۍ چې د پاکستان نېشنل عوامي پارټۍ نه په طبقاتي مسئله او په قومي مسئله د اختلاف لرلو په نتيجه کښې جدا او تشکيل شوې وې. (بل مشالونه ؛ ۱۱٤ مخ)

مرحوم شیر علي باچا انور چې د قومي سیاسي تحریک د وحدت او جمهوري شعور په بېدارۍ کښې کوم تاریخي او انقلابي کردار ادا کړے دے هغه به په پښتون قومي تحریک کښې همېشه یادګار وي. باچا جي د خلوېښتو کلونو د اوږدې مبارزې په دوران کښې د محنت کشو، مظلومو انسانانو او خپلو غېرتمندو وطنوالو له خاطره د هیڅ قسمه قربانۍ نه ځنګ و ځټ نۀ دے کړے. هغوي چې د محنت کشو عالمګیر تحریک، قومي تحریک او پښتو شعر و ادب دپاره د خپلو علمي آثارو کومه خزانه په ورثه کښې پرېښې ده چې د دنیا ټول محکوم، مظلوم او مقهور جمهور ترې طاقت، قوت، ګرمي، حرارت او توانائي اخستې شي او څۀ په ذریعه چې نۀ صرف مونږ د پښتنو قومي ازادي او خودمختاري او د اولس حکمراني، سوکالي او خوشحالي تر لاسه کولے شو بلکې د سامراجیت او استعماریت غوندې دېو قامته دشمنانو بېخ بنیاد هم اېستلے شو. چا چې د دنیا غریب اولس د استحصال او غلامۍ په زنځیرونو کښې ښکېل کړے دے او د چا خلاف چې صنوبر حسېن کاکاجي، عبدالرحیم پوپلزي، سبهاش چندربوس، حاجي صاحب ترنګزئ، باچا خان، عبدالصمد خان، افضل بنګش او د دوي

په زرګونو ملګريو د جدوجهد عظيم انقلابي بېرغ پورته کړے وۀ.[2]

محترم شېر علي باچا انور په ۲۷ جولائي کال ۱۹۹۸ کښې وفات او خپل پلرني کلي هوتي مردان کښې خاورو ته وسپارلے شو خو د باچا جي فکرونه ((بل مشالونه)) دي چې په هم داسې څول، طوفان او تيارو کښې به هميشه بلېږي او د وطن خواري کښو طبقو او زپلي اولس ته به د نور د منارو په څېر د منزل نخښې روښانه کوي. د هغوي تاريخي کردار، کارنامې، قرباني، شاعري او ادب و علم سره رشته د تاريخ روښانه بابونه دي. پښتانۀ به د هغوي دا اوچت کردار او عمل تل په زړونو او ذهنونو کښې تاند ساتي او هميشه به ورته د قدر په درنه سترګه ګوري او د هغوي د فکرونو سره به خپلو سوچونو ته دوام ورکوي او داسې به د باچا جي نامه هم تل تر تله ژوندۍ وي. د ستر خوشحال خان ختک د دې وينا په مصداق چې:

مړۀ هغه چې نۀ ئې نوم نۀ ئې نښان شته
تل تر تله په ښۀ نام پائي ښاغلي

---

[2] د باچا جي د ژوند د حالاتو دا دوېمه برخه د ښاغلي موسٰي خان يوسفزي د مضمون ((شېر علي باچا ايک انقلابي رهبر نه مرتب شوه. (محمد زبېر حسرت)

# ملي پاڅون ولې؟

ډېر پخوا به زمونږ په حجره کښې رېډيو کابل ډېر په مينه اورېدے شو. يوه ورځ د پروګرام خپرونکي ووئيل چې اوس تاسو ته د محکوم وطن د شاعر شېر علي باچا يو نظم وړاندې کوو او بيا يې دا يو څو شعرونه ووئيل:

لکه د ژمي په ماښام چې تورې لړې راشي
يا يو مزدور د کارخانې نه کور ته ستړے راشي

اتفاقاً ژمے هم وۀ او ماښام هم، زۀ ډېر خوشحاله شوم چې شېر علي باچا يو ښۀ شاعر دے او شعرونه يې تر کابله پورې خوارۀ شوي دي.

زما په خيال د شېر علي باچا شاعري په درېو دورونو کښې تقسيمېدے شي.

ابتدايي شاعري: زۀ ډېر حېران شوم کله چې ما د باچا د شاعرۍ متعلق د فرهاد محمد غالب ترين صاحب ليکنه ولوسته. د دوي د تجزيې مطابق د باچا وړومبۍ شاعري ورکه شوې يا ضائع کړې شوې ده. تر څو چې ماته علم دے نو باچا د طالب علمۍ په زمانه کښې شاعري کوله او د اکبر مېموريل کالج کښې چې اوس ګورنمنټ پوسټ ګرېجويټ

کالج مردان دے. د پښتو ادبي تولنې سېکتر وۀ او شعرونه او نثر به يې د کالج په ((شفق)) رساله کښې چاپ کېدل او بيا په کراچۍ کښې د وکالت د طالب علمۍ په زمانه کښې د کراچۍ نه د خورېدونکي ((عدل)) رسالې ايډيټر شو او اداريې او ليکونه به يې پکښې کول دا غالباً د کال ۱۹۶۰ زمانه وه دغه وخت به شېر علي باچا خپل شعرونه په يوه توره ډائرۍ کښې ليکل بيا وروستو چې کله باچا وخت په وخت جېلونو کښې بنديوان شو. نو دغه ډائري زما لاس ته راغله او ما ډېر په حفاظت سره د نورو کتابونو يوه الماريۍ کښې کېښوده چې ضائع نۀ شي او دا چې چرته به پکار شي دا ډائري ډېره موده پرته وه. بيا زۀ هم د کلي نه بهر شوم او د الماريۍ مالکان بدل شو کله چې ډېر وخت پس ما دا ډائري لټولو نو په لاس رانغله او تر اوسه ما بيا ونۀ ليده. نو د فرهاد محمد غالب ترين صاحب خبره صحيح ده چې باچا په ابتدايي دور کښې کومه شاعري کړې ده. هغه تولو لاس ته نۀ ده راغلې بيا هم د دې شاعرۍ زياته برخه د انور په تخلص سره محفوظه ده

هر څو کۀ د باچا په ابتدايي شاعرۍ کښې د ګل او بلبل ذکر شته خو داسې ښکاري چې دې دور کښې هم دوي ته طبقاتي مسئله د هر څۀ نه اهمه ښکارېده او په شاعرۍ کښې يې د استعمارګرۍ او خانۍ مخالفت. د انساني حقونو

غوښتنه، د يو انسان په بل د ظلم زور او د وطن د معاشي بدحالۍ ذکر کړے دے. دې سره سره يې د يو داسې قامي بدلون غوښتنه کړې ده کوم چې به د خواري کښ اولس د بېدارۍ او منظم کېدلو نه پس د وطن د خوشحالۍ سبب وګرځي.

دوېم دور: دا هغه وخت وۀ چې باچا به د شعرونو ليکلو په ځائے د شاعرانو سره په ادبي محفلونو کښې ګډون کولو او د هغوي د شاعرۍ نه به يې خوند اخستلو او يا بيا دا چې د شاعرانو د راغونډولو مرکز وۀ او بيا ورو ورو د ډاکټر همايون هما په قول چې کله يې غم جانان په غم جهان کښې واغړلو نو د انور نه باچا شو، غالباً چې سياسي هلې ځلې دومره ډېرې وې چې د شعرونو ليکلو وخت نۀ وۀ. البته باچا په دې زمانه کښې ډېر زيات نثر وليکلو. په دې کښې سياسي او ادبي ليکونه، مقالې، مضامين، د مزدور کسان تحريک تاريخ او نور ليکونه شامل دي.

هم د دې وخت خبره ده اسرار د طورو زمونږ د اُردو ژبې استاذ وۀ خو په چل چل کښې به يې مونږ ته پښتو ژبه ښودله. يوه ورځ د کور کار Home work دا وۀ چې هلکان به د پښتو يو څو شعرونه (مطلع) ليکي. ما وئيل چې باچا به شعرونو ليکلو کښې زما رهنمايي وکړي. د هغوي نه د پوښتنې نه پس راته باچا ووئيل چې زۀ اوس شعرونه نۀ شم

لیکلے او ذهن ته مې نۀ راځي. بیا یې ماته خپل دا غزل ولیکلو.

څـــۀ ازغـــي ازغـــي خـــاني ده
ګلـــو غوټـــۀ مـــې ځـــواني ده

او وئیل یې چې د دې نه ځان ته څۀ خیالات Ideas راغونډ کړه.

دریم دور: دا هغه دور وۀ کله چې شبیر علي باچا د طبقاتي مسئلې سره سره قامي ستونزو ته هم اوږه ورکړه. د پښتون قامي مسئلې هم یو طبقاتي شکل واخستو او په حیثیت د یو قام د نورو قامونو نه وروستو پاتې شو. دې زمانه کښې باچا د پښتون قام د ملي پاڅون دپاره هلې ځلې کولې او یو داسې سیاسي ګوند یې پښتنو ته معرفي کړو چې د پښتون قام په قامي او طبقاتي مسائلو یو ښکاره نظر لري. دې ځائے کښې به دا لیکل اهم وي چې باچاجي وړومبے سړے وۀ چې خپل سیاسي ګوند یې د ((پښتونخوا)) په نامه په شمالي پښتونخوا کښې جوړ کړو او بیا یې د پښتنو د یووالي په غرض جنوبي پښتونخوا سره یو کړو. باچاجي وړومبے سړے وۀ چې د پښتونخوا په نامه یې سرکلر جاري کړے وۀ.

داسې ښکاري چې د شاعرۍ په دریم دور کښې باچا د پښتون قام د پاڅون دپاره شعرونه لیکل بیا شروع کړل. دا شاعري ډېره پخه او خوندناکه ده او د دوي تخلص د انور په

ځائے باچا دے. دا شاعري د يو خاص مقصد نه ډکه ده او د باچاجي دا ارمان څرګندوي چې:

- ❖ د پښتنو د عالمانو دعا دې د پښتون قام د ازادۍ او خوشحالۍ دعا شي او دا:
- ❖ چې پښتانهٔ بايد ويښ شي، جرګه شي، خپل دښمن وپېژني، بيا پرې سياسي ګوزار وکړي، خپل ملي حقوق وګټي او د خپل وطن واګې تر لاسه کړي.

دا لړه د فکر او حېرانتيا خبره ده چې د شبر علي باچا شعرونه اونظمونه ډېره موده خوارهٔ وارهٔ پراتهٔ وو او د کتاب شکل کښې لوستونکو ته وړاندې نهٔ کړے شو، د نورو وجوهاتو نه وروستو دا خبره هم ښکاره شوه چې پښتونخوا وطن کښې د پښتو ژبې يوه داسې اداره نشته چې د انفرادي فائدې نه بالاتر د پښتو ژبې خدمت وکړي او د پښتو ژبې نظم يا نثر پښتون قام ته وړاندې کړي. هر څوکهٔ د پښتو اکېډمۍ او مرکزونه وجود لري خو تر څو چې ترې انفرادي يا سياسي فائده نهٔ وي نو د پښتو ژبې د پرمخ تګ دپاره کارونه د نيشت برابر دي.

د ملي پاڅون د چاپ کولو مقصد دا نهٔ دے چې ګني شبر علي باچا د هر چا نه ستر شاعر دے بلکې دا چې پښتنو ته په حېثيت د يو قام يوه نبغه لاره وښودلے شي چې دوي خپل مرام ته ورسوي او دا چې د باچا پېغام هغه اولس ته ورسي

څوک چې د قام خواخوږي دي. کېدے شي چې د دې کتاب د لوستو په نتيجه کښې په پښتون قام کښې داسې مشران او قهرمانان راپيدا شي چې د باچا شعرونو ته عمل شکل ورکړي او د پښتنو يوه قامي ستونزه حل شي.

د باچا شاعري راغونډول هله ممکن شو کله چې ښاغلي زبېر حسرت دې ته ملا وتړله او د باچا خوارهٔ وارهٔ نظمونه او غزلونه يې تر لاسه کړل، بيا يې د باچا په ژوند او فکر خپل ليک وکړو او ښاغلي فرهاد غالب ترين صاحب ته يې هم خواست وکړو چې د باچا د شاعرۍ جاج واخلي. د دغه دواړو ډېره مننه چې د باچا په شاعرۍ يې خپل درانهٔ ليکونه وکړل.

د ډاکټر اسرار د رهنمايۍ او د مراد علي باچا د منډو ترړو نه بغېر د کتاب چاپ کول ممکن نهٔ وو. د سيد محمد علي ډېره مننه چې په ډېره مينه يې د کتاب ټائټل جوړ کړو. د مشتاق مجروح صاحب د صبر او صفا کمپوزنګ او ترتيب ورکولو ډېره مننه.

باچا جي کهٔ دا کتاب په خپل ژوندون ليدلے وے نو ډېر به خوشحاله شوے وهٔ. د هغوي به دا خواهش وهٔ چې د هغوي ليک دې په مجلو کښې چاپ شي او په نتيجه کښې دې اولس بيدار شي. هيله ده چې هم دا څو نظمونه او شعرونه به د قامي ليکوالو، شاعرانو، مشرانو، خواري کښو او طالب

علمانو د پاڅون سبب وګرځي او خدائے دې وکړي چې هم دا پاڅون په ملي پاڅون کښې بدل شي. د باچا جي نور شعرونه او نظمونه کۀ د هغوي ملګرو او د پښتو ژبې او ادب مينه والو سره وي، هغوي ته خواست دے چې هغه يا د هغو نقل مونږ ته راولېږي چې په دوېم ايډيشن کښې يې سره د هغوي د مننې شامل کړو.

په درنښت
د شېر علي باچا کشر ورور
ډاکټر امجد علي
۳۱ مۍ ۲۰۱۰ (لندن)

# د پښتون دعا

اے طاقته اے قوته، اے قادر په هر صورته
اے رحمانه اے رحیمه، اے جباره اے کریمه

لږ زمونږ په حال بدل شه
د مظلومو سره مل شه
غواړو ستا له بركته
ښځ ژوندون ډک له عزته
کړ شو خلاص له غلیمانو
مونږ به سیال شو د سیالانو
د سنکیانګ نه تر بهکره
له آمو تیکسلا غره
د چترال نه تر بولانه
له هراته تر واخانه
روهیله افغان کله که
هر افغان ورسره یار که
یو ئې خُلۀ یوه جرګه که
دوي د خپل وطن مختار که
جګه جګه ئې شمله که

زوړ غـــزور ئې رابېــدار کـــه
ولــــولې ور حوالــــه کـــه
چــې اغيــار باندې يلغــار کــه
سندهـ، بلــوچ ورســره ملـۀ کـه
برابـــر ئـــې پــه قطـــار کــه
بيــا ئــې سم پــه مارګلــه کــه
د مغــل مــرګ تــه ئې تيــار کــه
پــه رهتــاس ئــې قافلــه کــه
پــه جهلـم ګــودر ئــې پــار کــه
پــه لاهــور ئــې غلبلــه کــه
قبــضه ګــرو زړۀ قــلار کــه
دبدبــه ئــې پــه انبالــه کــه
د رنجيــت وارث مــردار کــه
پــاني پــت چــې دوالــه کــه
احمــد شــاه ورلــه ســردار کــه
بيــا ئــې ښکار پــه بنګالــه کـه
د شــېر شــاه دور دوبــار کــه
بريــالے ئــې پــه کيرالــه کــه
ورســـره تمـــام بهـــار کـــه

روهيلکنډه او روهيله که
د حافظ نمسې تاجدار که
په کشمير ئې رساله که
چې کاشغر پورې رفتار که
ته ئې دومره بدرګه که
چې فارس ګډ په ناتار که
بيا چې نوره نۀ حمله که
ارادې ئې تار په تار که
سود خوارۀ شيخان ماله که
وران د مصر هر بازار که
اسرائيل چې فيصله که
يروشلم چې خودمختار که
استعمار چې ګرماله که
سامراجيان واړه په دار که
برکت ئې هماله که
فيض ئې عام لکه آبشار که
د دوي سيمه ګلاله که
منطقه ګل و ګلزار که
شګفته زمونږ شله که
وچې ډاګې ئې بهار که

په وطن چې معامله که
په سولی ئې هر غدار که
پښتو ژبه هر رنګه که
يو يو تکې ئې شاندار که
په هر رنګ ئې کامله که
علم و فن ئې په شا بار که
د باچا بېت کشماله که
قصيده د خپل ديار که

اے طاقته، اے قوته، اے قادر په هر صورته
اے رحمانه، اے رحيمه، اے جباره، اے کريمه

لر زمونږ په حال بدل شه
د مظلومو سره مل شه
غواړو ستا له برکته
ښځه ژوندون ډک له عزته

# خوږ وطن

لکه د ژمي په ماښام چې توري لړې راشي
لا يو مزدور د کارخانې نه تر جونګړې راشي
لا يو دهقان د خان پټي نه کور ته ستړے راشي
لا څوک سوالګرے د مالداره ورو ځې خړې راشي
لا بې ګناه قېدي زندان نه لکه مړے راشي
لا يو مظلوم د ظالمانو نه درګړے راشي

زما زړګيه! بس د خوږ وطن قيصه داسې ده
د اورېدو نۀ ده قسم دے چې ترخه داسې ده

داسې غريب کره ډېوه سم د ماښامه رېږي
لکه بيمار په ځنکدن د خپل انجامه رېږي
داسې نوکر د خان له وېرې د ناکامه رېږي
لکه مجبوره ګډوډ بېدونکې ګل اندامه رېږي
داسې غريبه د يخنۍ نه بس تمامه رېږي
لکه مېخوار په مېخانه سره د جامه رېږي

تهٔ خو مې چېرې چې د خوږ وطن خوارهٔ بيان کړم
زما زړګيه! دلته څهٔ دي اخر څهٔ بيان کړم

چرې رژېږي نه دلې د ارمانونو غوټۍ
کنې نو هره ورځ رژېږي د ګلونو غوټۍ
دلته تازه اوسي همېش د حسرتونو غوټۍ
کنې نو ګوره څنګه مړاوې د مخونو غوټۍ
تل په ژړا وي په سلګو د اميدونو غوټۍ
کنې نو ګوره څنګه خاندي د زخمونو غوټۍ

ما وې د خوږ وطن قيصه ده زهٔ به ئې سپوره نهٔ کړم
خو د احساس چرې مې وژني کهٔ ئې نوره نهٔ کړم

لکه کچه مېوې د باغ سپېره سيلۍ ووهي
لا تيار فصل د دهقان چرته ږلۍ ووهي
لکه د پوه چنۍ کچه کچه غوټۍ ووهي
لاچرته څول په توره شپه بلا مرغۍ ووهي
لکه ګل چين تازه ګلان په کتارۍ ووهي
لا يو جلاد د چا غلام نه کپرۍ ووهي

داسې مو خوږ وطن په تبر د خانۍ والے شي
داسې دا قام په تېرهٔ تېغ د امیرۍ والے شي

زما زړګیه! داسې تېز شوې چې په څهٔ غصه شوې
جوړ د وطن قیصه خوږه نهٔ ده په دې خفه شوې
زړګي درزا کښې راته وې یوه خوږه نغمه شوې
د ازادۍ زېرے مې وکړې په وطن خوره شوې
دې خوارو زار اولس له ورغلے اول جرګه شوې
بیا د وطن په غلیمانو یوه سره لمبه شوې

چې دا ظلمونه، ستمونه ټول ایره ایره شي
بیا به زما د خوږ وطن قیصه ایله خوږه شي

ښکلي دي چالاکه دلائل غواړي
اوس له عاشقانو وسائل غواړي

ډېره هوښيارتيا زما پکار نۀ شوه
خلق لړ تېروتي دي جاهل غواړي

ګل به شي، غنچه به شي، چمن به شي
دا بې سره دشتې واک کامل غواړي

پټ مئين او پته خُلۀ له خلقو نه
دا تاواني رسم خو قاتل غواړي

خونو کښې بندي ساتي پښتون حسن
دا غوټۍ دې ګل شي څۀ وئيل غواړي

شتۀ کړه کۀ لائق، حمزه، غني، اسرار
بيا هم شاعران لکه سائل غواړي

څۀ ښکلې تجويز دے وړاندې کړے يار
شنۀ بنګړي ماتېږي سرۀ پائل غواړي

يار چې غټ پټکې په خراسان تاړۀ
اوس له مغلانو فضائل غواړي

تنګ کړو ميکده کښې د زاهد زهد
جام باندې ويشتۀ دغه جاهل غواړي

ن راته باچا يو نکته دان وئيل
ښۀ غزل جوړ ذهن زړۀ ګائل غواړي

څـه ازغـي ازغـي خـاني ده
ګلـو، غوټـۀ مـې ځـواني ده

د سـحر طمعـې قربـان شـم
ګنـي شـپه خـو سـتوماني ده

مـا وې ګـل کـرم ملګـرو
دوي وائـي زمکـه بـاراني ده

وچـې شـونډې مېخـوار ګرځـي
د سـاقي مهربـاني ده

نـن غـوټې د رنـګ دپـاره
سـتا د وينـې ارمـاني ده

هـسې زيـر دې اننګـي دي
خـو قيـصه دې الـواني ده

د زړۀ وينـې څـښه انـوره!
د شـرابو چـې ګرانـي ده

# د نمر خون

د شفق په سور کي رنګ کښې د افتاب د قتل رنګ دے
د افق سینه زخمي ده، ماښام وینو کښې رنګ بنګ دے
د رڼا په شیشه سپینه، دے باران د تورو کاڼو
د اسمان نه تر زمینه، د اوچتې شپې غورځنګ دے

د یقین ذکر خو پرېږده، اوس ګمان هم زما نهٔ شي
د دړدونو مقام ورک دے، اوس ژړا به د چا څهٔ شي
نهٔ سینو کښې ولولې شته، نهٔ جذبې دي چرته پاتې
چې د یار د حسن سنګ وي، نو د شوق سجدې هلهٔ شي

رقیبانو ګټه وکړه، د جنګ ختمې مرحلې دي
چې سینو کښې بلېدلې، مړې د غم هغه شغلې دي
څوک به چا سره وفا کړي، چرته ښکلې پاتې نهٔ شهٔ
بس قاتل ته دې دعا کړي، پاتې دغه ارادې دي
خو دا جنګ هغه جنګ نهٔ دے چې به ختم شي دا چرې

د تیارو د انتها خو، ابتدا د روڼ سحر ده
غوږ پړ دلې ازغي ښائي، قافله د ګلو زر ده
خاموشي شوندې ګنډلې، ده لېوالـه د يـو چغې
غلي والي ورته وائي، يو نغمه د شور و شر ده

د افتاب د وینې تاج بیا، شمعې هاغه دې په سر کړو
ستورو نُور له نمره واخست، ډک ئې جام ترې سراسر کړو
د ښو په هر يو غشي، ډيوې بلې شوې د اوښکو
منورې روښنايي کښې، هر يو زخم دې تتر کړو

د ډيوو ژبې که رېږي، يا پړق پړوق دې په اسمان کښې
دا بخري دي چې نُولي، د دې شپې په لوئے دالان کښې
د دردونو قصه زمکه، لکه ګل وي په سل ژبو
لکه بوئ هسې خاموش دي، لېوني په دې داستان کښې

د تيارو لوړ د بوالونه، چرته درز شو رانړېږي
د ګلونو غندل غاړې، لکه تورې چې رقېږي
د بې سره دشت هوا ده، چې تاوونه خورې تاوېږي
د سپرلي نغمه چېړونکي، بلبلان دي هوسېږي
د وفا ښکلي چمن کښې، د زړګي ګلاب موسېږي
له نظر، اننګو، شونډو، سرۀ شراب دي چې توئېږي

د زلمي خوب د شين بڼ نه، راروان دے نسيم غلے
د بدلون د زېري مشک ئې. هره ساه کښې دے نيولے
وائي کاروان به ضرور درومي، د رنګونو رنړاګانو
د سحر په اوږه باندې، يو تازه افتاب نيولے

(د علي سردار جعفري د اردو د يو نظم نه ماخوذ)

خدائے خبر دا د کوم حسابه راځي
نن دې یادونه بې حسابه راځي

مینه دے ځائے په ځائے تپوس کړي زما
کور ته جوړ بیا خانه خرابه راځي

بېلتون زما د کلے کور سړے دے
په غم ښادۍ مې بې جوابه راځي

ساقي لږ ستړګو سره جام تکر کړه
نشې دې کمې له شرابه راځي

بېلات د حورو شیخ ته نۀ دے منظور
خود ئې نفرت له میو نابه راځي

لا پیچ و خم د زلفو نۀ وباسي
لائې حیا له پیچ و تابه راځي

انوره دار دے کۀ د یار کوڅه ده
آرزو د وصل ترې کامیابه راځي

# بدلون

زما د قام د بې وسۍ په سره مېره باندې نن
قطره قطره ستا د رېبار نظر شبنم ورېږي
ستا د ګل رنګ بدن د پشم باران راغے دلته
زما د ملک تږې ورشو باندې بس سم ورېږي
د پښتنو د خوار چمن په مړاوې شوو غنچو
ستا د تازه لبانو پرخه ده هر دم ورېږي
نن د خوارانو غريبانو په زعفران د جبين
ستا د ګلګون رخسار پونه ده دم په دم ورېږي

چې د بندېز حکم به ئې کو هغه راځي د نوګرام
خاورې ده، اوس د اشنغر وانې به څوک بندوي
پښتانۀ واړه نن قطار ځي د تنظيم په اسمان
اوس کۀ د لر دي کۀ د بر زانې به څوک بندوي
چې سپي ازاد وو کاني بند وو هغه بل موسم وۀ
اوس شوه ګرمي د يو بدلون کاني به څوک بندوي

(ډېره اسماعيل خان جېل)

# تلوسې

د مینې ښکلې خوږې دنیا کښې
بېلتون خور کړے د تګې دام دے

له خپل انجامه زۀ ښۀ خبر یم
چې مې ښکلے د مینې جام دے

چې وي لېواله د اولس غم کښې
زما په هغو زلمو سلام دے

ژوند دے بېدار ښۀ اودۀ چې نۀ شې
دا انقلاب ستا یو لوړ مقام دے

توره ورومبې کړه رباب ترې وروستو
د مشرانو د خُلې کلام دے

دا چې پنډونه ئې په اوږو وينې
يوه روپۍ ئې د ورځې دام دے

خوارو زيلې چې را په ياد شي
وينې مې جوش کړے مدام دے

وينې دي څښي، لاورته کورې
سر ئې کړه غوخ بنهٔ انتقام دے

کهٔ دې پرې هله وکړه يو ځلې
دا خوږ وطن تاته انعام دے

درغلم داره، د قام دپاره
دغه رسو کښې لوئے احترام دے

د ژوند تيارو کښې چې وروستو نهٔ شې
منزل ته پاتې بس يو ګام دے

(پښتني ارمان ۷۳ مخ افغانستان چاپ کال
غالباً ۱۹۵۸)

ما شربتونه چې خوارۀ خښلي دي
تراخۀ غمونه مې پاخۀ خښلي دي

خُم خو دا يو دے اے ساقي د دنيا
چا ترې خيرن او چا رانۀ خښلي دي

د مجازي ميو په جام کښې اشنا
حقيقتونه مې تراخۀ خښلي دي

ستا خماري سترګو نشه کړمه زۀ
بيا هم لا وايئ چې تا څۀ خښلي دي

د ژوند قيصو باندې پوه شوے يمه
ما شرابونه چې زاړۀ خښلي دي

د انور شعر نه نشې څاڅي نن
جوړ د وصال هغه مې دۀ خښلي دي

څــهٔ ازغــي ازغــي فــضا ده
د ګلونـــو غوټـــه ســاه ده

قـــاتلان دي بزيـــديان دي
بيـــا حــسين د ے كــربلا ده

چـــا د حـــق خبـــرې وكـــړې
زنځيرونـــــه دي شـــــنيا ده

بيـــا پـــه ظلـــم خُلـــهٔ راســـپړم
بيـــــا د جبـــــل دروازه وا ده

خـــو منـــزل تـــه رســـيدل دي
پـــه ښـــكاره ده كـــهٔ پـــه غـــلا ده

خـــود بـــه دلتـــه خـــزان وینـــې
چرتـــه خیـــرے ګرہـــوان وینـــې

د شـــــرابو ګرانـــــي راغلـــــه
اوس بـــه څـــۀ څـــښتي رنـــدان وینـــې؟

کـــړل تېـــرو د خـــانۍ نوکـــو
دهقـــان وینـــې کـــسان وینـــې

د چمـــن ګـــلان دي تـــږي
لـــږې ورکـــړئ د څـــان وینـــې

د مئینـــو بـــه څـــۀ حـــال وي
لمـــن خیـــرې ګرہـــوان وینـــې

یو سپوږمۍ کښې بل وېتنام کښې
دا دے فـــرق د انـــسان وینـــې!

هلته په مخ زلفې ول ول لګي
دلته په زړهٔ مې غشي بل لګي

د ګورو زلفو په تيارو کښې پټې
د سبا نخښې په يو چل لګي

د ډېرو جونو د ژوندون خوشحالي
نيازبينې ستا په رنګ محل لګي

چا له په مخ شينکي خالونه وهم
څکه ګولۍ مې په ګوګل لګي

رقيبه! پوه شه چې اجل دې راغې
د اور لمبې ستا په بورجل لګي

زما د ژوند تلوسې مهٔ تپوسه
خومره چې دي ستا په اردل لګي

څوک چې چمن کښېنې سېل د ګلو کوي
نن په هغوي چغې د غل لګي

اوس مې د زړۀ هره سودا انوره
د يو سبا بس په تکل لګي

چا مې په خوا کښې ډک جامونه يوړۀ
زما د سترګو نه ئې خوبونه يوړۀ

ډېر ئې دنيا کښې ارماني پاتې کړل
چا چې د ځان سره موجونه يوړۀ

د غم درياب کښې په اميد د غاړې
په دردمند زړۀ ئې ارمانونه يوړۀ

زماني ستا د ناکړدو د لاسه
پټ په زړګي کښې ارمانونه يوړۀ

زۀ مېخانه کښې وچې شونډې ګرځم
وړې دنيا ترې شرابونه يوړۀ

ستا د راتلو په انتظار کښې سبا
ناديده سترګو ئې يارونه يوړۀ

تورې وريځې دې پرې لرې نه کړې
کۀ دې خيالونو اسمانونه يوړۀ

د تورو زلفو په کربليج کښې اشنا
سترګو مې اوښکې بارانونه يوړۀ

خزانه! ستا د ارو پېر بادونو
د خوشحالۍ شينکو بادونه يوړۀ

هيڅ خبر نۀ شوې د انور زړګيه!
په چپه خُلۀ چا تهمتونه يوړۀ

(۱۹۵۷)

# ملګرو

راځئ چې هر ځائې کښېنو
ودرېږو يو ځائې کښېنو
که چرته غم وي
يا د خوشيو دم وي
په جمع ئې ټول تېر کړو
دا ځان ځانې هېر کړو

يواځې هر يو داسې
لکه اس ګډ سوده شي
اخلي قدم بوقه شي
خېژو په بره لوړه
لار مو په ګټو خويه
تګ مو په خوړه خوړه

ستاسو نه ځه غواړمه
خو دا ارمان دې زما
لمبه دې بله وي تل
د دې ورورۍ زمونږه

زموږ په سوي ګوګل
تر څو چې مړه نه یو

یواځې زه یواځې
یمه یو داسې لینده
چې تار پرې سور نه وي
داسې یو سور انغرے
بل پکښې اور نه وي
لکه په شنده ونه
د مېوې کور نه وي

تاسو سره به یم زه
څو غږېدلې نه ده
خوږه نغمه د ژوندون
څو را کښې ساه غږېږي
دا ده وعده د پښتون
تاسو م خوږو ملګرو
تاسو م خوږو ملګرو
لار کښې ما مه پرېږدئ
لار کښې ما مه پرېږدئ

سترګې او بانـــهٔ دې تربګنـــي کـــوي
خـــال دې پـــه جبـين حکمرانـــي کـــوي

سپین رخسار، زلفان نیسي په تور د خط
دا کـــافران ښـــه مـــسلماني کـــوي

ګـران شـو دیدنونـه پـه بـازار د عـشق
اوس بـــه د زړهٔ وینـــې ارزانـــي کـــوي

دا د عـشق قیـصې رښـتیا کـوي بـه څـوک
دا بـه زمـا تـوان او سـتا ځـواني کـوي

زړهٔ بـې ځایـه ورغـے پـه مـست لـښکر
زر لـــري نـــهٔ زور قهرمـــاني کـــوي

شات، شودهٔ، شراب، مستي، ښائسته حورې
شـیخ بـه هلتـه څـهٔ زنـدګاني کـوي

مونږه د خلیل رسم په خان منو
خلق ګڼه حلال کړي قرباني کوي

فن رسي زړګي ته د ښکلا په لار
دې سفر منزل ته ذوماني کوي

ګرځي پهښور بیا پایهٔ تخت باچا
دلته پښتانهٔ به سلطاني کوي

(مردان اګست ۱۹۹۲)

حسن کـه د زړهٔ غـل دے
زړهٔ د دغـې زړهٔ غـل دے

مینـه کـوه ډاډ ګرځـه
څـوک چې شـرمېدهٔ غـل دے

هـر قاتـل تـه نېـغ ګـوره
چـا چې نـهٔ کاتـهٔ غـل دے

شـپه سـتائي پـه سـپین سـبا
شـیخ د نمرخاتـهٔ غـل دے

سـتا د حـسن غلـهٔ ګـوري
نـور باچـا پـه څـهٔ غـل دے

لـــويې څـــو جرګـــې پـــه پېـــښور کـــوو
بيـــا بـــه ســـم ګـــوزار پـــه ســـتمګر کـــوو

دلتـــه اباســـين هلتـــه پـــښين نيـــسي
يـــو ښـــکر شـــئ لـــښکر پـــه قبـــضه ګـــر کـــوو

ټـــک بـــه د ټوپـــک وي پـــه اټـــک بانـــدې
دغـــه شـــر محـــشر لـــه يـــو اشـــر کـــوو

ځـــئ چـــې ځـــو ګلـــه پـــه مارګلـــه پلـــه
دا پرېکـــړه بـــه مـــونږ پـــه اشـــنغر کـــوو

پـــولې بـــه معلـــومې کـــړو مـــونږ پـــل پـــه پـــل
پـــام بـــه د پـــالنې د دوتـــر کـــوو

وتـــړي واخـــان چـــې لـــه بـــولان ســـره
لـــک وارې بـــاور پـــه خپـــل رهبـــر کـــوو

نـهٔ دي سرپرسـت چـې قـام پرسـت نـهٔ دي
دا دراز خبـــره مختـــصر کـــوو

پـــاتې د ے ارمـــان دا د ســوري افغـــان
يــو وار بـــه لاهـــور زېــر و زبـــر کـــوو

تېر چې شي دا تـور شبخون پـه خـور پښتون
بيـــا باچـــا اختـــر بـــه پـــه بـــاختر کـــوو

# ګله پدونکې؟

هغوي د خپل ګلشن د بې وسه ګلونو د تازګۍ او ښکلا د پاره
د خپلواکۍ له پاکو، رڼو او مقدسو چينو نه ډک کندولي د ځان سره راوړه
هغوي د خپل قامي ژوندون، غيرت، عزت او ناموس د شملو د عظمت لوړتيا
د ازادۍ او قهرمانۍ د سمندر د چپو نه، جوش، جذبه او مستي د ځان سره راوړه

اوس د سپوږمۍ په نرم او پوست تپ کښې تودې تودې
روغې د اباسين د څګ نه جوړې ځوانۍ پستې پستې
ښوربرې هم ګنهرې په دې روش د يو بل سرې

ته خو هم سياله بې مثاله ځان ته وائې پښتنې شهرينې
تقدير بدلېږې رابدلېږې د قامونو دا قانون خو وينې
هوا ده ډېره مزېداره خوشګوار شولو موسم د مينې
څه له ته لاس تر زنې ناسته ئې په کور او په وطن غمګينې

ګام په تولن تولن کا، تود دې چلن چلن کا
تاؤ دې بدن بدن کا، نغمه وطن وطن کا

چې مونږ به هم د خپل تالا والا ګلشن د بې وسه ګلانو د تازګۍ او ښکلا د پاره
د خپلواکۍ د پاکو، رڼو او مقدسه چينو نه ډک کندولي د ځان سره راوړو
چې مونږ به هم د خپل قامي ژوندون، غيرت، عزت او ناموس د شملو عظمت او لوړتيا

د ازادۍ او خپلواکۍ د اباسین د چینو نه جوش، جذبه او مستي د خان سره راوړو

ربـــه دا تــــوده ګــــډا شـــېريني تــــه اتــــڼ کــــا
درز د شـــملې خــــور کــــا، د وطــــن ملګــــري وړ کــــا

سُرخي غونډې خورېږي په رخسار د قافلې
سپوږمۍ ستوري اوده شو په کړنګار د قافلې

دانې د مرغلرو دي ځلېږي ځائے په ځائے
راځئ چې ترې نه جوړ کړو ښکلې هار د قافلې

دے وخت د سبا ستوریه! راخېژه کۀ راخېژې
تر څو به په نصیب وي انتظار د قافلې

منزل به درله ګام کړم اوس ناترسه ولولو
اشنا راسره نیسي نن مُهار د قافلې

توکېږم زۀ په غېږه د ازغو کښې لکه ګل
ګل چینه! هېڅ مکوه په ګلزار د قافلې

دا ښکاري څاڅکي څاڅکي چې نن ستا په اننګو
هم دې خولو خو راوستۀ خُمار د قافلې

ژړا چې په خندا شوه د منزل په لویه لاړ
شر مېږي کهکشان چې ویني لاړ د قافلې

ستم کوه ناترسه! ترس مهٔ کړه په انور
زما وار به هم وګورې په وار د قافلې

## یو شعر

زیړ مخي پسرلي دي د خزان د باد چپو کښې
په للمو زرغونېږي تل شړشم د تماشو

**Sher Ali Bacha (1933-1998)**

# Milli Pasoon

"Milli Pasoon" is the collection of Pushto language poems of Sher Ali Bacha. In the beginning his pen-name was Anwar which he later on dropped for Bacha. He was an intellectual, progressive writer and a Pukhtun nationalist politician. Because of his progressive views and support for the poor masses, he was put behind bars for nearly 10 years by the dictatorial forces in Pakistan.

Sher Ali Bacha wrote meaningful poetry. This reflects his anti-imperialist sentiments, passion about social justice and unity of Pukhtun Nation. He wrote excellent prose as well. He wished his unpublished writings reach the readers. This has now been made possible to some extent. After his death "Bal Mashaloona" and "Milli Atal" were released. And now "Milli Pasoon" will further fulfil his wishes.

*Pasoon Publishers Mardan*